# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٧٤ ګڼه / سه شنبه ۰۵ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۱٦مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰٤ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## ای‌اس‌ای می‌خواهد مقام‌های پیشین افغان را به‌عنوان ابزار استخدام کند

زلمی خلیل‌زاد، نماینده پیشین دولت امریکا در گفتگوهای صلح افغانستان می‌گوید، سازمان استخبارات پاکستان (ISI) می‌خواهد مقام‌های پیشین افغان را به‌عنوان ابزار استخدام کند.

به گفته خلیل‌زاد، در حالی که مقام‌های پیشین افغان خودشان راحت در بیرون از کشور بسر می‌برند، ISI می‌خواهد آنان را جهت گسترش خشونت و مرگ در افغانستان به کار گیرد.

او از مقام‌های پیشین افغان که در بیرون از کشور بسر می‌برند خواسته که در بازی‌های سازمان استخبارات پاکستان دخیل نشوند.

خلیل‌زاد تأکید کرده که ISI می‌خواهد از این مقام‌های پیشین افغان در چانه‌زنی‌ها با امارت اسلامی استفاده ابزاری کند.

این در حالی است که اخیراً گزارش‌های مبنی‌بر گفتگو هیئتی از ISI با مقام‌های اداره پیشین افغان در ترکیه به نشر رسیده است.

## بې برخلیکه واخان اوس پر نړیوال سوداګریز مرکز بدلېدونکی دی



واشنګټن پوست ورځپاڼې په خپل راپور کې ویلي، اسلامي امارت غواړي واخان کې ستر سوداګریز نړیوال مرکز رامنځته او یاد دهلېز له چین سره ونښلوي.

دغې امریکایي ورځپاڼې ویلي، اسلامي امارت هوډ لري د افغانستان شمال یوې غرنۍ او جزیرې ته ورته سیمې واخان کې لویه لار جوړه او دا هېواد په یوه نړیوال سوداګریز مرکز بدل کړي.

د دې ورځپاڼې په راپور کې ویل شوي، که دغه لار جوړه شي د مرکزي اسیا او چین ترمنځ به د سفر کولو وخت کې د پام وړ کموالی راشي او سوداګرۍ به زیاته شي.

واشنګټن پوسټ زیاته کړې، دغه پروژه له یوې خوا د افغانستان له اقتصاد سره مرسته ... ۳مخ

## د اطلاعاتو او کلتور وزارت رهبري ناسته؛ پر اوازو او ناکره خبر خپرولو اندونه شریک شول

د اطلاعاتو او کلتور وزارت په مقام کې پرون ددې وزارت د رهبري غړو ترمنځ ناسته شوې ده.

یاده غونډه د اطلاعاتو او کلتور وزارت د وزیر ملا خیرالله خیرخواه په مشرۍ جوړه شوې وه، چې پکې پر ګڼو موضوعاتو بحثونه وشول.

دې ناسته کې د مغرضو رسنیو له لوري پر اوازو خپرولو او ناکره مالوماتو شریکونې اندونه تبادله شول. همدا ډول له ټولو اړخونو غوښتنه وشوه، چې د خبر رسولو برخه کې باید د ژورنالیزم اخلاق او رسنیز معیارونه په پام کې ونیول شي. دې ناسته کې ټینګار شوی چې هېڅوک دې د رسنیو، ملي او نړیوالو نورمونو سره په ټکر کې څه نه خپروي.



## د چاپېریال ساتنې موضوعات دې نه سیاسي کېږي

د ملګرو ملتونو پراختیایي پروګرام یا UNDP مرستیال ډاکټر دوویل موکرجي د چاپېریال ساتنې ملي اداري رئیس مولوي مطیع الحق خالص سره کتلي.

د ملګرو ملتونو د دې بنسټ مسئولینو ویلي، افغانستان له اقلیمي بدلون له امله متاثره دی او نړۍ باید دې موضوع کې سیاسي چلن ونه کړي.

ډاکټر موکرجي زیاته کړې، د کاپ ۲۹ مې غونډې وروسته افغانستان کې د چاپېریال ساتنې پروژو پلي کولو ته د نړیوالو پاملرنه زیاته شوې او دغه بنسټ افغانستان سره د لا زیاتو مرستو د راجلبولو هڅې کوي.



دې کتنه کې ښاغلي خالص اقلمي بدلون برخه کې د اسلامي امارت پر ژمنتیا ټینګار کړی په خبره یې، دغه مسئله باید سیاسي نه شي.

دا په داسې حال کې ده، چې له دې وړاندې د چاپېریال ساتنې ملي اداري مسئولینو افغانستان کې د اقلیمي بدلون او چاپېریال ساتنې برخه کې د نړۍ په دوه ګوني چلن نیوکه کړې وه.

## د کابل او تاشکند د سوداګریزې کچې پر لوړوالي خبرې وشوې

کابل ته د ازبیکستان لومړي وزیر عبدالله عارفوف په مشرۍ د ازبیکستان دولتي خصوصي سکټور راغلي پلاوي د صنعت او سوداګرۍ وزیر نور الدین عزیزي سره کتنه کې د دواړو هېوادونو ترمنځ ... ۳مخ



## نورستان کې ګرانبیه او نیمه ګرانبیه ډبرې وپلورل شوې



د نورستان ولایت په دواب ولسوالۍ کې له ماوې کان څخه ترلاسه شوې ګران بیه او نیمه ګران بیه ډبرې (بیروج، کونزایټ او مارګنایټ) د ۳۰ میلیونه افغانیو په ارزښت د کمپټې په شتون کې د بولۍ له لارې وپلورل شوې. نورستان د افغانستان یو له هغو ولایتونو ګڼل کېږي چې د قیمتي ډبرو پراخ کانونه لري. د بیروج ډبرې د ځانګړي شین او نیلي رنګونو له امله ډېرې ارزښتناکې او ښکلې ګڼل کېږي.

## د اسلامي امارت مشروعیت؛ نړیوالې ټولنې ته یو واضح پیغام

۲مخ

## په هرات کې ۷ سترې اقتصادي او بنسټیزې پروژې تر کار لاندې دي

۲مخ

## هېواد کې د حج اداینې پچه اچونه ترسره شوه

د ارشاد، حج او اوقافو وزارت ویلي چې د حج غوښتونکو لپاره د پچې اچونې لړۍ په ټول هېواد کې ترسره شوه. دغه وزارت په یوه خبرپاڼه کې ویلي چې، د نوملیکنې بهیر څو موده مخکې پیل شوی و او پرون د دغه وزارت د ځینو چارواکو او د ځینو حج‌کوونکو په شتون کې ترسره‌شوه.

ویل کېږي، چې سږکال د حج لپاره تر ۱۰۵ زره زیاتو کسانو نوم‌لیکنه کړې ده. په پلازمېنه کابل کې د حاجیانو مجتمع کې په همدې تړاو غونډه رابلل شوه چې د دې وزارت مسلکي مرستیال، د مرکزي ریاستونو رییسانو، د حج د داخلي کمېټې غړو او د حج نویو زایرینو پکې ګډون کړی وو. د ارشاد، حج او اوقافو وزارت مسلکي مرستیال شیخ الحدیث مولوي زرمحمد حقاني وویل چې د سږ کال د حج اداینې په پار په پلازمېنه کابل او ټولو ولایتونو کې د حج پروسې نوم‌لیکنه پیل شوه وه چې د سلواغې په اتمه پای ته ورسېده. نوموړي ویلي چې د کابل په ګډون په ټولو ولایتونو کې پچه اچونه ترسره شوې. یاده دې شي چې په دې وروستیو کې د ارشاد، حج او اوقافو سرپرست وزیر له ریاض غوښتنه کړې وه چې په راتلونکي کې د افغانستان لپاره په سهمیو کې زیاتوالی راولي.

## امضای تفاهمنامه برای مدیریت حوادث طبیعی در کندهار




اداره ملی آمادگی مبارزه با حوادث و یک نهاد بشردوستانه تفاهم‌نامه‌ای به ارزش ۲۹ میلیون و ۷۲۵ هزار افغانی امضا کردند که بر اساس آن، در صورت وقوع حوادث طبیعی، در ولسوالی‌های ولایت کندهار کمک‌رسانی خواهد شد. بر اساس خبرنامه‌ی اداره ملی آمادگی مبارزه با حوادث، ملا نورالدین ترابی، سرپرست این اداره ... ص۳

## سرمقاله



## د حکومتي چارو د خنډ ستر لامل اداري پېچلتیا ده!

تېره ورځ د ریاست الوزراء اداري مرستیال ښاغلي عبدالسلام حنفي د اداري چارو د ساده کولو په یوه غونډه کې ټینګار وکړ، چې د هېواد اقتصادي پرمختګ د اداري چارو په اسانۍ او سادګۍ پورې تړلی او باید په دې برخه کې چټک ګامونه واخیستل شي. حقیقت هم دادی چې حکومتي چارو کې له ژور فکر کولو نه هر د عقل څښتن دې پایلې ته رسېږي چې د سر کاري چارواکو د اخلاص، جدیت، پوره استعداد او ډېر وخت اصلي ضایع کوونکی او لوی دښمن همدغه اداري پېچلتیا یا په بله اصطلاح کاغذ پراني ده. همدا کاغذ پراني د یو ډېر پیاوړي او تکړه مدیر او مخلص چارواکي هم وخت ضایع کوي او هم یې اخر پای له ناهیلۍ سره مخ کوي. دغه راز په هره وړه - لویه موضوع کې د اداري مراحلو ډېر اوږدوالی او پېچلتیا د چارو د پرمختګ مخه نیسي او خلک له کاره زړه توروي. د مثال په ډول یو کس وایي په تذکره کې د یوه نوم فقط د یوه توري په اصلاح کولو کې مې لس شپې منډې وکړې او پنځه زره افغانۍ په مزدورۍ- خوارۍ ګټلې پیسې مې ولاړې. یو رسمي مجاهد وایي د ملي دفاع وزارت اړوند یو کنډک نه مې پولیسو ته د تبدیلۍ لپاره دوه میاشتې منډې ووهلې او شپږ زره افغانۍ مې مصرف وشو خو پای کې منفي ځواب راکړی شو! یو دوکاندار شکایت کوي وایي د جواز اخیستو لپاره مې شپږ میاشتې د پنځوسو دفترونو دروازې وټکولې او د جواز د رسمي قیمت درې برابره مې پیسې ولاړې خو جواز لا هم څه درک نه لري! دایو څو هغه بېلګې وې چې هر افغان یې په هر مجلس کې اوري او بیا د هر مجلس له خوا ټوله ملامتي پر همدې حکومتي ادارو ور اچول کېږي، بیا ټول سپین ږیري په ګډه دعا کوي چې خدای تعالی دې په حکومت کې د هندو کار هم نه بندوي! مطلب دا چې د حکومت د بدنامۍ او حاکمانو ته د ښېرا کولو لپاره یوازې همدغه اداري پېچلتیا هم بالکل شافي او کافي ده. په دې معنی چې حاکمان که هر څومره مخلصان، خواخوږي او د خلکو ملا تړلي خادمان هم شي، خو چې ... ۳مخ

## لغمان کې د بېرې مصنوعي ځنګل جوړېږي



د لغمان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې د دغه ولایت مرکز اړوند کچور سیمه کې د څه باندې ۹ میلیونه افغانیو په لګښت د بېرې مصنوعي ځنګل د جوړولو چارې پیل شوې دي.

د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس ویلي، چې د دغه ولایت مرکز اړوند په کچور سیمه کې پر ۳۰ هکټاره ځمکه د ملګرو ملتونو د پراختیایي پروګرام په مالي ملاتړ د ۹ میلیونه ۵۰۰ زره ۲۸۰ افغانیو په لګښت د بېرې مصنوعي ځنګل د جوړولو چارې پیل شوې دي. نوموړي زیاته کړې، چې د دغه ځنګل په جوړېدو سره به ۶۰۰ کسانو ته د کار زمینه برابره او د سیمې د زرغونتیا ترڅنګ د کرنیزې ځمکې د سېلابونو له خطر څخه وساتل شي او د شاتو مچیو کاروباریانو ته به د شاتو د تولید ښه زمینه برابره شي.

د یادونې وړ ده، چې له دې وړاندې هم په قرغیو ولسوالۍ کې هم ورته ځنګلونه جوړ شوي دي.

# د اسلامي امارت مشروعيت؛ نړيوالې ټولنې ته يو واضح پيغام

**محمد قاسم عزام**

اسلامي امارت د ۲۰۲۱ کال د اګست په ۱۵مه واک ته ورسېد او له هغه ورځې يې د افغانستان د امنيت، ثبات او اقتصادي پرمختګ لپاره بې‌ساري اقدامات ترسره کړي. نن افغانستان له هر ډول کورنيو جګړو، وسله‌والو ډلو او اداري فساد څخه پاک دی. د نړۍ هېڅ هېواد د داسې امنيت، قانوني ثبات او عادلانه حاکميت نمونه نه شي وړاندې کولی، لکه څنګه چې اسلامي امارت تأمين کړې ده. دا ټولې لاسته راوړنې دا حقيقت ثابتوي چې د اسلامي امارت داخلي او نړيوال مشروعيت هېڅ شک ته اړتيا نه لري، خو لوېديځ د حقيقت په منلو کې ستونزه لري، ځکه چې دوی نه غواړي د خپلې سترې ماتې اعتراف وکړي. د نړيوالو قدرتونو اصلي ستونزه دا نه ده چې اسلامي امارت د بشري حقونو يا د حکومتدارۍ اصول نه مراعاتوي، بلکې ستونزه دا ده چې اسلامي امارت د دوی ټولې نيواکګرې پروژې شنډې کړې. د امريکا او ناټو ځواکونو شل کاله د افغانستان د نيولو، د خلکو د ذهنيت بدلولو او د خپلو مزدورو نظامونو د ساتلو هڅه وکړه، خو په پای کې يې شرمېدلې ماتې وخوړه. اوس چې دوی په پوځي ډګر کې ناکام شوي، غواړي د نړيوالو سازمانونو، اقتصادي بنديزونو او تبليغاتو له لارې د اسلامي امارت پر وړاندې خنډونه جوړ کړي، خو دا يوه بې‌فايده هڅه ده. د ښځو د حقوقو په برخه کې، لوېديځ د اسلامي امارت پر ضد بې‌اساسه تبليغات کوي، خو حقيقت دا دی چې نن په افغانستان کې د ښځو حقوق تر بل هر ځای خوندي دي. د اسلامي امارت تر واک لاندې، ښځې له اخلاقي فساد، فحشا او لوېديځې استعمارګرې ټولنې څخه په کامل ډول خوندي دي. نن د افغانستان ښځې د ناموس، عزت او د اسلامي شريعت تر سيوري لاندې ژوند کوي، داسې امنيت او عزت چې لوېديځ يې تصور هم نه شي کولی. امريکا او اروپا چې د ښځو د حقوقو خبرې کوي، په خپلو هېوادونو کې يې هره ورځ زرګونه ښځې له جنسي تېري، اخلاقي فساد او ټولنيز استثمار سره مخ دي. هغوی نه غواړي چې اسلامي امارت د ښځو لپاره د اسلامي عدالت او عزت نمونه وګرځي، ځکه چې دا به د دوی درواغجنه څېره بربنډه کړي.

په لوېديځ کې د ښځو پر وړاندې ظلم يوازې د احصايو له مخې نه، بلکې د ورځني ژوند له تجربو هم ښکاري. د امريکا د عدليې وزارت د معلوماتو له مخې، هر ۶۸ ثانيو کې يوه ښځه د جنسي تېري قرباني کېږي او له هر شپږو ښځو څخه يوه د خپل ژوند په اوږدو کې دا ډول ناوړين تجربه کوي. په برېتانيا کې له هر درېيو ښځو څخه يوه د فزيکي يا جنسي تاوتريخوالي سره مخ ده، د پوليسو، عدليې سيستم او کارځايونو په شمول، په ټولنه کې د ښځو استثمار دوام لري. په فرانسه کې يوازې په ۲۰۲۰ کال کې د کورني تاوتريخوالي له امله ۱۰۲ ښځې وژل شوې او د جنسي تېري قضيې هر کال په زرګونو زياتېږي، خو دولت يې د کنټرول لپاره کوم عملي اقدامات نه ترسره کوي.

په افغانستان کې، برعکس، اسلامي امارت ښځو ته نه يوازې امنيت ورکړی، بلکې هغوی ته يې د اسلامي اصولو مطابق د زده‌کړې، کار او ټولنيز فعاليت لپاره داسې چاپېريال برابر کړی چې د نړۍ په هېڅ بل نظام کې يې مثال نه ليدل کېږي. ښځې نه دي مجبورې چې د کار او اقتصادي اړتيا لپاره خپل عزت له لاسه ورکړي، نه د غرب په څېر د فحشا او اخلاقي انحراف قرباني کېږي. اسلامي امارت د ښځو د تعليم او کار لپاره سالم اصول وضع کړي، څو هغوی د اسلامي حجاب، اخلاقي ارزښتونو او د کورني نظام د ثبات تر سيوري لاندې په خپل طبيعي رول کې پرمختګ وکړي. لوېديځ، چې اسلامي امارت د ښځو د حقوقو د نقض په دروغجنو تورونو ملامتوي، خپله يې د ښځو د ساتنې هېڅ معيار نه لري. دا هماغه غرب دی چې د ښځو بدن د تجارتي بازار يوه برخه ګرځولې، هغوی يې د فلمونو، فيشن او اعلاناتو د استثمار وسيله کړې او د ازادۍ تر نوم لاندې يې د جنسي تېري، اقتصادي استثمار او اخلاقي فساد يو داسې ماحول رامنځته کړی چې هره ورځ زرګونه ښځې په کې قرباني کېږي.

اسلامي امارت، برعکس، د ښځو واقعي حقوق تضمين کړي. ښځې دلته له فحشا، اخلاقي سقوط او ټولنيز استثمار څخه خوندي دي. هغوی ته د عزت، امنيت او د کرامت ژوند برابر شوی. دا هغه حقيقت دی چې لوېديځ يې نه شي زغملی، ځکه چې دا به د دوی د سيکولر نظام دروغ افشا کړي. د نړيوال مشروعيت مسئله اوس د اسلامي امارت لپاره اړتيا نه، بلکې يوازې د نړيوالو قدرتونو يوه بهانه ده. اسلامي امارت نن د افغانستان د ټولو خلکو استازيتوب کوي، ولس يې ملاتړ کوي او هېواد يې په چټکۍ سره د اقتصادي ودې، امنيت او د اسلامي عدالت پر لور روان دی. که نړيوال مشروعيت پر دې اساس ورکول کېدای چې يو نظام خپل هېواد اداره کولی شي، نو اسلامي امارت بايد د نړۍ تر هر نظام مخکې وپېژندل شي، خو حقيقت دا دی چې نړيوال ځواکونه د اسلامي نظام له پرمختګ وېرېږي، ځکه چې دا به د هغوی د استثمار پر بنسټ ولاړ نظامونه چيلنج کړي.

اسلامي امارت نن خپل ټول شرايط پوره کړي، نړيوال قوانين يې مراعات کړي او هېڅ هېواد ته يې ګواښ نه دی پېښ کړی. اوس چې اسلامي امارت د نړيوال مشروعيت نه، بلکې د نړيوال تعامل خبره کوي، دا نړۍ ته يو واضح پيغام دی چې اسلامي افغانستان به تل مستقل، خپلواک او د اسلامي نظام د تطبيق پر بنسټ جوړ وي. که نړۍ غواړي له اسلامي امارت سره تعامل وکړي، نو بايد د واقعيت منلو ته چمتو شي. نړيوال تعامل هغه څه نه دي چې اسلامي امارت يې تر لاسه کړي، بلکې هغه حقيقت دی چې نړۍ به يې بالاخره ومني.

# د خير او شر بخيلان

**مولوي نورالحق مظهري**

ځيني خلک په بخالت کې دومره غوټه شوي وي چې خپلو ناخوښه انسانانو ته نه تنها دا چې ښه ژوند نه غواړي او له هغوی څخه شر نه دفع کوي بلکې د هغوی هر کار بد ګڼي او دا يې زړه غواړي چې هغوی په هر کار کې ناکام شي سره له دې چې د هغوی کار د ګټې او زيان دواړو احتمال لري خو په دې خاطر چې دی په بخالت کې انتهاء ته رسېدلی وي نو ځکه يې د هغوی لخوا د هېڅ کار کول نه خوښېږي او کوښښ کوي چې هغوی په ژوند کې د هر ډول فعاليت څخه را وګرځوي.

د خير او شر بخيلان د خپل ناخوښه انسان هر عمل د هغه په ګټه او د ځان په زيان ويني ځکه نو د هغه هر کار ته د شک په سترګه ګوري؛ که څه هم هغه بد کار کوي خو دی داسې فکر کوي چې په دې کار کې به ممکن د هغه ګټه او زما تاوان وي نو ځکه يې مخې ته خنډونه اچوي.

د خير او شر بخيل ته ځان جامع الکمالات ښکاري له همدې امله يې زړه غواړي ټول انسانان د ده په خوښه کار وکړي يا لږ تر لږه د ده هر ډول مشورې ته ارزښت ورکړي سره له دې چې هر انسان د ښه او بد دواړو استعداد لري او هر انسان تر خپله وسه کمال ته رسېدلای شي او يا نيمګړتيا په کې پيدا کېدلای شي.

د خير او شر بخيل د خپل ناخوښه انسان پر وړاندې هم مدعي وي، هم شاهد وي او هم قاضي وي ځکه نو ځان په تمامه معنی بر حق بولي او هغه بيا په تمامه معنی ملامت بولي.

کوښښ وکړئ چې په خپلو زړونو کې هېڅ ډول بخالت ته ځای ور نه کړي په خاصه توګه د خير او شر بخالت ته چې په دنيا کې له ځانه سره رسوايي او ناروغي لري او په آخرت کې له ځانه سره تباهي او بربادي لري.

د بخالت د بدۍ په سبب رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه د مسلمان سره مناسب نه بولي او فرمايي: خَصْلَتَانِ لاَ تَجْتَمِعَانِ فِى مُؤْمِنٍ الْبُخْلُ وَسُوءُ الْخُلُقِ.[سنن ترمذي۲۰۸۹] ژباړه: په مسلمان کې دوه عادته نه سره يوځای کېږي: بخالت او بد اخلاق. يعنې په کوم چا کې چې دغه دوه عادته وي هغه پوره او کامله مسلمان نه دی. او په بل حديث کې چې په مسند احمد کې راغلی دی بخيل يې د هغو کسانو څخه شمېرلی، چې جنت ته به نه داخلېږي.




# په هرات کې ۷ سترې اقتصادي او بنسټيزې پروژې تر کار لاندې دي

**رحمت الله فيضان**



هرات د افغانستان له مهمو اقتصادي او سوداګريزو مرکزونو څخه شمېرل کېږي، چې د خپل جغرافيوي موقعيت، صنعتي پياوړتيا او سوداګريز ظرفيت له امله د هېواد په اقتصادي پرمختګ کې ځانګړی رول لري. په افغانستان د امريکا په مشرۍ د نړيوال اشغالګر ايتلاف له ماتې او د اسلامي امارت له بريا وروسته د دې ولايت د لا پرمختګ او د زېربناوو د پياوړتيا لپاره، ګڼ شمېر سترې اقتصادي او بنسټيزې پروژې تر کار لاندې دي، چې موخه يې د اقتصادي ودې چټکتيا، د کارموندنې فرصتونو زياتوالی، د صنعتي، ترانسپورتي او انرژۍ سکتورونو پراخوالی دی.

د دې پروژو پلې کېدل نه يوازې د هرات او نورو ولايتونو د اوسېدونکو لپاره د ژوند اقتصادي شرايط ښه کوي، بلکې د افغانستان د عمومي اقتصادي ثبات او ځانبسياينې پر لور هم مهم ګام بلل کېږي. دغه سترې پروژې، چې د انرژۍ، کرنې، صنعت، ترانسپورت او سوداګرۍ په برخو کې تطبيقېږي، د هېواد د زېربنايي پراختيا لپاره حياتي اهميت لري.

په دې ليکنه کې د هرات ولايت مهمو روانو اقتصادي او زېربنايي پروژو ته لنډه کتنه شوې، چې هره يوه يې د اقتصادي ودې لپاره د پام وړ ارزښت لري. اوس مهال، په هرات کې ګڼ شمېر مهمې اقتصادي او بنسټيزې پروژې تر کار لاندې دي، چې موخه يې اقتصادي پراختيا، د کار موندنې ايجاد او د صنعتي او ترانسپورتي زېربناوو پياوړتيا ده. دا پروژې نه يوازې د اقتصادي ودې او پرمختګ زمينه برابروي، بلکې د سيمې خلکو ته به ګڼ شمېر کاري فرصتونه هم رامنځته کړي.

د هرات مهمې روانې پروژې دا دي:

د تاپي سيمه‌ييزې پروژې پرمختګ: د تاپي سترې پروژې عملي کار د افغانستان په خاوره کې په چټکۍ سره روان دی او تر دې دمه د هرات په اوږدو کې له ۶ کيلومتره زيات پايپ لګول شوی دی. دا پروژه به د انرژۍ برابرولو او د هېواد اقتصادي عوايدو د زياتوالي لپاره مهم رول ولوبوي.

د پاشدان بند: د پاشدان بند جوړېدو بهير، چې د هرات له مهمو اوبو لګولو او برښنا توليدوونکو پروژو څخه شمېرل کېږي، تر اوسه ۹۵ سلنه پرمختګ کړی او د ۱۱۷ ميليونه ډالرو په لګښت د بشپړېدو په حال کې دی. دغه بند به د اوبو او برښنا د اړتياوو لويه برخه پوره کړي.

د هرات سمنټو پروژه: د هرات سمنټو فابريکې د اساسي تأسيساتو د جوړولو چارې، په شمول د اداري ودانۍ، بشپړې شوې دي. د دې پروژې بشپړتيا به د کورني سمنټ توليد ته وده ورکړي او د وارداتو اړتيا به کمه کړي.

نوی صنعتي ښار: د هرات په ۵۵ زره جريبه ځمکه کې د يو نوي صنعتي ښار جوړولو لپاره ابتدايي چارې پيل شوې دي. دغه ښار به د صنعتي توليداتو پراختيا او پانګوالو د جذب لپاره مناسبه فضا برابره کړي.

د خواف–هرات وسپنې پټلۍ: د دې مهمې رېل‌پټلۍ د څلورمې قطعې لومړۍ فاز، چې هرات له ايران سره نښلوي، تر دې دمه يې چارې ۸۰ سلنه بشپړې شوې. دغه کرښه به د سوداګريزو مالونو د لېږد اسانتيا برابره کړي او د افغانستان او سيمې هېوادونو ترمنځ سوداګريز تبادلات زيات کړي.

د هرات نړيوال ترمينال: د هرات د نړيوال ترمينال د لومړۍ فاز جوړېدو بهير، چې ۲۰ ميليونه ډالر لګښت پرې راځي، د پام وړ پرمختګ کړی. د دې پروژې بشپړتيا به د ترانسپورتي زيربناوو د ښه والي لامل شي.

د صنعتي ښارګوټي پراختيا: د هرات صنعتي ښارګوټي د پنځم فاز لپاره د ځمکو د وېش ابتدايي چارې پيل شوې دي. دغه اقدام د پانګوالو د ملاتړ او د توليدي صنعتونو د پراختيا په موخه ترسره کېږي.

دغه پروژې د اقتصادي ودې او د هرات د دوامداره زېربناوو جوړولو لپاره د چارواکو جدي عزم څرګندوي. تمه ده چې د دغو طرحو له بشپړتيا سره به د پراخو کاري فرصتونو زمينه برابره شي او د دې ولايت توليدي او سوداګريز ظرفيتونه به په بې‌ساري ډول لوړ شي.

# افغان اعلانات

### اطلاعیه مزایده جایداد

طبق هدایت محکمه محترم زون دوم شهر کابل قرار است ملکیت (دکاکین) حاجی رئیس فرزند پاچانور واقع حصه دوم جاده میوند مندرج قباله های شرعی شماره ۲۰۳ بر ۱۶ مورخ ۱۳۸۱/۵/۲۶ و ۴۴۴۱ بر ۱۰۷۹ مورخ ۱۳۸۰/۸/۹ که دارای مساحت ۱۸۸.۷۵ متر مربع می باشد در مجلس مزایده به فروش میرسد. افرادی که خواهان خریداری آن باشند تا ده روز پس از ختم این اعلان درخواست های رسمی خویش را به ریاست محترم حقوق ولایت کابل واقع فروشگاه تسلیم و شرطنامه را اخذ نمایند. ۹۰۶۲

***

### اعلان دعوت به داوطلبی

موضوع: پروژه ترمیمات اساسی تعمیر لیلیه موسسه تحصیلات عالی پنجشیر به شمول تشناب های آن شماره دعوت به داوطلبی: MOHE/1403/NCB/W-21 وزارت تحصیلات عالی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه پروژه ترمیمات اساسی تعمیر لیلیه موسسه تحصیلات عالی پنجشیر به شمول تشناب های آن. اشتراک نموده و نقل چاپ شده شرطنامه مربوط را به طور رایگان در حافظه یا فلش دسک از ریاست تدارکات، وزارت تحصیلات عالی بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت {۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز {۲ شنبه } تاریخ {۶ حوت ۱۴۰۳ } به ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی واقع کارته چهار ناحیه سوم کابل افغانستان ارائه نمایند. تضمین آفر به شکل بانک گرنتی: مبلغ ۱۲۲,۵۰۰/۰۰ یک صد و بیست و دو هزار و پنجصد افغانی جلسه آفر گشایی به روز {۲ شنبه } تاریخ {۶ حوت ۱۴۰۳} ساعت {۱۰:۰۰ قبل از ظهر} در [صالون آفرگشایی ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی} تدویر می گردد. شماره تماس: ۰۷۸۰۳۵۰۲۶۵ آدرس الکترونیکی: Zubair.shams2016@gmail.com

نوت: جلسه قبل از آفر گشایی {۳ شنبه} ۲۳ دلو ۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر در دفتر جلسات ریاست تدارکات تدویر میگردد. ۹۰۸۲

***

### دعوت به داوطلبی

نـام پروژه: تهیه و تدارک نصب و منتاژ ۳۳ قلم تجهیزات برقی و مواد ساختمانی دبل سـرکت 20KV سب استیشن نور جهاد الی پوسته نمبر یک ولایت هرات د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه (تهیه و تدارک نصب و منتاژ ۳۳ قلم تجهیزات برقی و مواد ساختمانی دبل سرکت 20KV سب استیشن نور جهاد الی پوسته نمبر یک ولایت هرات) دارای کود نمبر (برشنا شرکت/۱٤٤٥/داوطلبی باز ملی/اجناس/۰۹۷) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های اجناس بدست آورده، آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز چهار شنبه تاریخ ۰۸ حوت ۱۴۰۳ به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شـرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پزیرش نمیباشد

۱-تضمین آفر :مبلغ ۶۵۷,۳۰۰ شـش صد پنجا و هفت هزار و سـه صد افغانی میباشد.

۲-زمان آفر گشایی: جلسه آفر گشایی به ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز چهارشنبه مورخ ۸ حوت ۱۴۰۳ برگزار میگردد.

۳-محل آفر گشایی: منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

٤-آدرس اداره: د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل. برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ۰۲۰۲۵۱۳۶۷۷

آدرس الکترونیکی: kefayat.shirzad@dabs.af

ajmalkhan.esmatzai@dabs.af

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شـود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد پروژه « تهیه ۱۷ قلم پرزه جات ضرورت دستگاه های برق آبی ولسوالی فرخار، ورسج مربوط ریاست تخار برشنا تحت شماره داوطلبی « اعلان مجدد۰۳۲-اجناس/داوطلبی باز ملی/۱٤٤٥/ برشنا شـرکت « با شرکت ساختمانی و خدمات برق رسانی اسمارت گرید پاور با داشتن محل اصلی تجارتی} ولایت پروان ولسوالی جبل سراج، جبل سراج پروان} را به مبلغ ۱,۹۱۰,۰۰۰ (یک میلیون نو صد ده هزار) افغانی اعطا نماید. اشـخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات د افغانستان برشنا شرکت – دهمزنگ – کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند. این اطلاعیـه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### دعوت به داوطلبی

نام پروژه: تهیه و تدارک تجهیزات برقی و مواد ساختمانی،نصب و منتاژ تجهیزات، تست و کمیشنینگ،دیزاین و کنکشن و حق الامتیاز ترانسفارمر پروژه برق رسانی مدرسه مظهر العلوم نیازی واقع ساحه دیری ولایت خوست. د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی (تهیه و تدارک تجهیزات برقی و مواد ساختمانی، نصب و منتاژ تجهیزات، تست و کمیشنینگ، دیزاین و کنکشن و حق الامتیاز ترانسفارمر پروژه برق رسانی مدرسه مظهر العلوم نیازی واقع ساحه دیری ولایت خوسـت. دارای کود نمبر (برشنا-۰۱۰۰-اجناس-۱٤٤٦-داوطلبی باز ملی) اشـتراک نموده و نقل شـرطنامه را به شکل سافت از مدیریت تدارکات اجناس بدست آورده، آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته به روز معین به مدیریت تدارکات اجناس –ریاست تدارکات، تعمیر دفتر مرکزی د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند. آفر های ناوقت رسیده والکترونیکی قابل پذیرش نبوده تضمین آفر اخذ میگردد

۱: تضمین آفر: مبلغ تضمین آفر: ٦٥,٠٠٠ شصت و پنج هزار افغانی

۲ زمان جلسـه قبل از داوطلبی به روز شـنبه سـاعت: ۱۰:۰۰ قبل از ظهر: ۲۷/ ۱۴۰۳/۱۱ برگزار میگردد.

۳: آفر گشایی: جلسه آفر گشایی به روز چهارشنبه ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۰۸ بر گزار میگردد.

٤: آدرس و محل آفر گشایی: منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

۵: آدرس اداره: تعمیر دفتر مرکزی د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل. برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ۰۷۶۷۴۱۸۸۹۹/۰۷۲۹۰۰۴۶۳۰

آدرس الکترونیکی: Janan.karimi@dabs.af

Kefayat.shirzad@dabs.af

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسـی از فقره (۲) ماده چهل و سـوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، ریاست کابل برشنا در نظر دارد تا قرارداد پروژه تهیه و تدارک ۵ پایه ریلی اضافه باری ضرورت سب استیشن شرق کابل برشنا را تحت شماره کابل برشنا– ۱۴۰۳– اعلان مجدد– داوطلبی باز ملی داخلی– اجناس– ۲۲ با شـرکت محترم تجارتی آروین ارسلان دارنده جواز نمبر ۷۴۸۳۳ و با داشتن محل اصلی تجارتی} شاه شهید، مرکز کابل، کابل افغانستان} را به مبلغ ۲,۰۷۲,۵۰۰ دو میلیون و هفتادو دوهزار و پنج صد افغانی اعطا نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاسـت کابل برشنا – چمن حضوری– ناحیه هشتم– کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسـی از فقره (۲) ماده چهل و سـوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، ریاست کابل برشنا در نظر دارد تا قرارداد پروژه تهیه و تدارک ۳ قلم تجهیزات ضرورت مدیریت ریلی برای تسـت سب استیشن و جنگشن های کابل برشنا را تحت شماره کابل برشنا– ۱۴۰۳– داوطلبی باز ملی داخلی– اجناس– ۲۴ با شرکت محترم تجارتی لوژستیکی ساختمانی و سرکسازی حبیب الرحمن دارنده جواز نمبر D-24776 و با داشتن محل اصلی تجارتی} سرک کولوله پشته، میوند غزی پلازا، مرکز کابل، افغانستان} را به مبلغ ۱,۵۰۵,۰۰۰ یک میلیون و پنج صدو پنج هزار افغانی اعطا نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاسـت کابل برشنا – چمن حضوری– ناحیه هشتم– کابل افغانسـتان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تاسی ازفقره ۲ ماده چهل سوم قانون تدارکات، به اطلاع عموم رسانیده می شود، که وزارت دفاع ملی درنظردارد تا قرارداد «امور کرایه دهی مساحت (٦٣ متر مربع) زمین ملکیت وزارت دفاع ملی امارت اسلامی افغانستان واقع (کوه آسمانی ولایت کابل)» دارای شماره ثبت پلان « وزارت دفاع ملی– ۱۴۰۳ - املاک -۰٤٨» که از روش داوطلبی باز داخلی طی مراحل گردیده و ذریعه حکم نمبر(٦٨٥) مورخ ۱٤٤٦/۷/۲۹ مقام محترم معاونیت اول وزارت دفاع ملی با « مجیب الله مجیب ولد محمد رحیم» دارنده جوازنمبر/تذکره «٤٤٦٧٦–٠٥٠٠–١٣٩٩» و آدرس «قصبه، ناحیه پانزدهم–کابل»، به قیمت «کرایه ماهوار ٦٣ متـر مربع زمین مبلغ ۵۳۰۰ افغانی، کرایه سـالانه موازی ٦٣ متر مربع زمین مبلـغ ٦٣٦٠٠ افغانی و مجموع کرایه ۵ ساله ٦٣ متر مربع زمین مبلغ ۳۱۸۰۰۰ افغانی» تائید گردیده است، اعطاء نماید. اشخاص حقیقی وحکمی، درصورتیکه هرگونه اعتراض درزمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشراین اعلان الی مدت ۷ روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی واقع خواجه بغرا بر وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقدقرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تاسی ازفقره ۲ ماده چهل سوم قانون تدارکات، به اطلاع عموم رسانیده می شود، که وزارت دفاع ملی درنظردارد تا قرارداد «امور کرایه دهی مساحت (۵۰۰ متر مربع) زمین ملکیت وزارت دفاع ملی امارت اسلامی افغانستان واقع (پلچرخی– ولایت کابل)» دارای شماره ثبت پلان « وزارت دفاع ملی– ۱۴۰۳ - املاک -۰٤٩» که از روش داوطلبی باز داخلی طی مراحل گردیده و ذریعه حکم نمبر(٦٨٦) مورخ ۱٤٤٦/۷/۲۹ مقام محترم معاونیت اول وزارت دفاع ملی با « مجیب الله مجیب ولد محمد رحیم» دارنده جوازنمبر/تذکره «٤٤٦٧٦–٠٥٠٠–١٣٩٩» و آدرس «قصبه، ناحیه پانزدهم–کابل»، به قیمت «کرایـه ماهوار ۵۰۰ متر مربع زمین مبلغ ۵۰۰۰ افغانی، کرایه سـالانه موازی ۵۰۰ متر مربع زمین مبلغ ٦۰۰۰۰ افغانی و مجموع کرایه ۵ ساله ۵۰۰ متر مربع زمین مبلغ ۳۰۰۰۰۰ افغانی» تائید گردیده است، اعطاء نماید. اشخاص حقیقی وحکمی، درصورتیکه هرگونه اعتراض درزمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشراین اعلان الی مدت ۷ روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی واقع خواجه بغرا بر وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقدقرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تاسی ازفقره ۲ ماده چهل سوم قانون تدارکات، به اطلاع عموم رسانیده می شود، که وزارت دفاع ملی درنظردارد تا قرارداد «امور کرایه دهی مساحت (۱٤٤ متر مربع) زمین ملکیت وزارت دفاع ملی امارت اسلامی افغانستان واقع (گارنیزون قول اردوی ۳۱۳ مرکزی)» دارای شماره ثبت پلان « وزارت دفاع ملی– ۱۴۰۳ - املاک -۰۵٤» که از روش داوطلبی باز داخلی طی مراحل گردیده و ذریعه حکم نمبر(٦٨٨) مـورخ ۱٤٤٦/۷/۲۹ مقام محترم معاونیـت اول وزارت دفاع ملی با « مجیب الله مجیب ولد محمد رحیم» دارنده جوازنمبر/تذکـره «٤٤٦٧٦–٠٥٠٠–١٣٩٩» و آدرس «قصبه، ناحیه پانزدهم–کابل»، به قیمت «کرایه ماهوار ۱٤٤ متر مربع زمین مبلغ ۸۷۸٤ افغانی، کرایه سالانه موازی ۱٤٤ متر مربع زمین مبلغ ۱۰۵٤۰۸ افغانی و مجموع کرایه ۵ سـاله ۱٤٤ متر مربع زمین مبلغ ۵۲۷۰٤۰ افغانی» تائید گردیده است، اعطاء نماید. اشخاص حقیقی وحکمی، درصورتیکه هرگونه اعتراض درزمینه داشـته باشند، میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشـراین اعلان الی مدت ۷ روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی واقع خواجه بغرا بر وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقدقـرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

# د خپل ځان لپاره غوره مشاور وټاکئ!

م حمادشیرزاد

همدې اسـاس او ارزښت ته په کتلو، د خپل ځان لپاره د امت او ولس خیرخواه مشـاور انتخاب کړئ، هغه چې خود غرضـه او د خود خواه وي او هڅلکه حق نه وایي، د هغوی کړنې او مشورې يواځې د ملتونو او حکومتونو تر منځ د واټنونو رامنځته کولو سرچپره، لکه د ابن علقمي په څیر به د یو لوی او خیر حکومت د پای سبب هم شي.

د مشاورینو د امتحانولو لپاره هر مشر او هر هغه شخص چې مشاور ته ارتیا لري، جدي پاملرنه وکړي، تر امتحان وروسته یې بیا مشاور او د حکومتداری په کولوکې مشورې ورځيني واخلي، ځکه یو خو دا شـرالقرون دی، بل د هر انسـان دوه دری څېرې دي، څوک د تملق او چاپلوسی، څوک د امتیاز او چوکۍ او څوک بیا د نورو خواهشاتو د له منځه تللو له امله دار او ویره کوي او هر وخت د لا نتکلم پر غوښتی ناست وي.

په داسې یو حالت کې چې موږ قرار لرو، ډېری مصلحتونو ته ارتیا او ضرورت لرو، یو داسـې عمیق سیاست لوبول په کار دي چې هم مو خپل اسـلامي او ملي ارزښـتونه سـاتلي وي، هم مو اسلام لا تقویه کړی وي او هم د دغه خورپدلي او کړپدلي ملت ته، چې له کلونو قرباني ورکوي او خورپږي، نور د خوښی، سکون او آرام ژوند راوړی وي. مشـرانو او مسـؤلینو! عمر فاروق رضي الله عنه چې د حکومتونو قوي بنیاد او اسـاس یې اېښی دی، د هغه د عدالت او انصـاف ترازو تل برابر و، خو د حکومتولی پر وخت یې د الله تعالی ویره څومـره ډېره وه، تل به یې دا فکر کاوه او چې زما په حکومت کې څوک خفه نه شي او څوک به په نس وږی او تږی ویده نشي او دا به یې ویل چې زه به د خپل حکومت/رعیت اړوند خدای تعالی ته څنګه حساب او کتاب ورکوم؛ راځئ د خپل ځان له فکر تېر او د دغه ولس او حقیقي اسلام په رڼا کې مخته لاړ شو، تر څو موبیا خلې قرباني هدر او بې ثمره نه شي.

د مشورې ارزښـت، مقام او ځای ډېر لوړ دی، مشوره د قرآني نص او بیا د رسـول الله صلی الله علیه وسلم یو مهم سنت عمل دی، دا په اسلام کې یو بنسټیز او مهم رکن ګڼل کېږي، مشوره د مسائلو او موضوعاتو د لا روښنایي او لا ښکاره کېدلو لپاره ډېره اړینه ده، د مشورې د ارزښت لپاره د خدای تعالی د کلام یواځې دا امر هم کفایت کوي، هغه فرمايي: «وشاورهم في الامر» او همدا راز شورى ته د ارزښـت ورکولو لپاره خدای تعالی د قرآن کریم یو بسته سورت د شوری په نوم نازل کړی، الله تعالی د رسول الله مبارک د مشـورې اخیستلو او کولو توصیف بیان کړی او فرمايي چې «وامرهم شـوری بینهم»، زیاتره مفسرينو، لکه امام بغوي، امام نسـفي، ابن جریـر او قرطبي رح د «وشـاورهم في الامر» ایت لاندې د شـورى د وجوب خبـره کړې او دا یې هم ویلي چې د الله تعالی له لوري د وحت پیغمبر ته پر شـورى حکم د دې لپاره وه چې امت ته د شـورى او اجتماع پر سنت په لاس ورشي او دوی په راتلونکي کې د شورائیت پر لاره لاړ شي.

رسول الله مبارک او صحابهٔ کرامو یې تل د خپلو حکومتي کارونو او آن تر دې چې په شخصي کارونو کې هم له یو بل مشوره اخیسته او دا د رسول الله مبارک حدیث هم دی چې (ما خاب من استخار ولا ندم من استشار) مفهوم یې دادی چې څوک استخاره او مشوره کوي هغه نه ناهیلی او پښېمانه نه شي، رسول الله مبارک د افک په واقعه کې له علي، زید بن ثابت او نورو صحابهٔ کرامو سره مشوره وکړه، خلفاء راشدینو هم تل له نورو سـره مشوره ترسره کړې، ابوبکر رضي الله عنه د زکات له منکرینو سـره د جهاد او قرآن د تدوین پر وخت مشورې وکړې، عمر فاروق رض یو مستقله شورى او کمېټه جوړه کړه او هلته به تل مشورې کېدلې، عثمان رض د مصحف د راټولو لپاره بیا یو اصحابه راټول کړل.

## اسلامي امارت په غزه کې د حماس ...

په کچه د مبارزې تولو شهیدانو ته قربانیو یو خل بیا یې نړیوالو کچه پر یوې پېژندل شوې قضیې بدله شوې ده. د افغانستان اسلامي امارت په خپره کړې خبرپاڼه کې دغه راز زیاته کړې، چې د حماس اسلامي غورځنګ د خپلو قربانیو په برکت په سیاسـي او پوځي ډګرونو کې له پخوا څخه لا ډېر قوي او غښتلی شوی دی.

## بررسی استفاده بهینه از زمین‌های ...

مراقبت از این زمین‌ها، اصلاح خاک و شناسایی نوع آن و وضعیت اقلیمی بحث کردند. این پروژه با هدف بهبود و استفاده بهینه از منابع طبیعی در راستای رشد اقتصادی کشور طراحی شده است. متخصصان و مسئولان ارشد تاکید کردند که این طرح می‌تواند نقش بسزایی در تقویت زراعت و توسعه پایدار کشور ایفا کند.

## یک چکدم در لغمان به بهره‌برداری ...

شیخ شیراحمد حقانی، والی لغمان در مراسم افتتاح این چکدم گفته که تلاش‌ها به هدف مدیریت آب‌ها در این ولایت به شدت ادامه دارد.

هزینه چکدم ساخته شده در دره کرنج ولایت لغمان از سوی موسسه FGO پرداخت شده است.

لغمان در شـرق کشـور از ولایت‌هـای حاصل‌خیز است که با مدیریت آب‌های سرزمینی در این ولایت سکتور زراعت می‌تواند رشد چشم‌گیری داشته باشد.

## بې برخلیکه واخان اوس پر نړیوال ...

کوي او له بلې خوا نړیوالې سوداګرۍ ته د افغانستان خای پیاوړی کوي.

د نړیوالو چارو شـنونکي په دې بـاور دي، دغه لار به د افغانسـتان مرکزي رول چې پخوا یې د ورېښمو په مسـیر کې درلود بیرته را ژوندی او افغانستان به په سیمه ییزه څلور لارې بدل کړي.

## د حکومتي چارو د خنډ ستر لامل ...

د اړوندو چارو لوایح او تګلارې اصلاح نه شـي، هر حاکـم د خپلې اداري اړوند چـارو د پرمختګ لپاره څه نوښـت ونه کړي او د اداري مراحلو دا اوږده اوږده پراوونه رالنډ او ساده نه کړي، امکان نه لري چې پایې چارې پرمختګ وکړي او یا د مراجعینو له ښیراوو خان وژغورلی شي. پر دې اساس لازمه ده چې د اسلامي امارت مشران د حکومت اړوندو کږدو اداراتو کې د بې ضرورته کاغذ پرانی او پېچلتیاو د اسـانی او ساده‌ګۍ لپاره ژور انقلابي ګامونه واخلي ترڅو هم د چاروګو د وختونو او خواکونو د ضایع کېدو مخه ونیول شـي او هم د رعیت مجبور مراجعین له دغه ورپېښ عذابه وژغورل شي.

## د کابل او تاشکند د سوداګریزې ...

د ترسـره شـویو هوکړو د لا زیاتې همغږۍ رامنځته کېدو او د سوداګرۍ کچې پر پراخیا خبرې کړي دي. دې کتنه کـې د دواړو هېوادونو ترمنـځ د ترجیحي سوداګرۍ هوکړه لیک تیارېدو، سمنګان کې د سمنتو فابریکې جوړولو او د دواړو هېوادونو ترمنځ د سوداګرۍ خونو په جوړولو هم خبرې شوې دي.

د ازبکسـتان دغې پلاوي د افغانستان ډېرو سکرو د وارداتو لپاره چمتووالی ښودلی.

بلخوا د صنعت او سـوداګرۍ وزیر د دواړو هېوادونو ترمنځ په کال کې د محصولاتو او تولیداتو لپاره ترمذ نړیوال سـوداګریز مرکز کې پنځه ننداراتونونه جوړېدو غوښتنه کړې. د یادونې ده، چې د افغان خصوصي سـکتور او ازبکسـتاني پلاوي ترمنځ د ۴.۵ میلیون ډالرو په ارزښت سوداګریز تړونونه هم لاسلیک شوي.

## امضای تفاهم‌نامه برای مدیریت ...

روز گذشـته در دفتـر خود با محمد نعمان قریشـی، نماینده‌ی موسسه بشردوستانه برای افغانستان، دیدار کرد. در نشست این دیدار، ترابی بر اتخاذ تدابیر پیشگیرانه پیش از وقوع حوادث تأکید کرد و گفت که در صورت بروز حادثه، کمک‌ها باید به‌موقع آماده و در سریع‌ترین زمان ممکن به مردم آسیب‌دیده توزیع شوند.

وی افزود که این کمک‌ها باید به خانواده‌های مسـتحق تحویل داده شوند تا از آن بهره‌مند گردند.

محمد نعمان قریشـی نیز گفت که مؤسسه‌ی آن‌ها در بخش‌های مختلف فعالیت دارد و این پروژه زمانی تطبیق خواهد شد که در ولایت موردنظر حادثه‌ای رخ دهد.

از آن زمـان، برنامه جهانی غذا اقدام کرده و کمک‌های نقدی را بـه ۵هزارو۱۲۵ خانواده‌ی آسـیب‌دیده توزیع خواهد کرد.

این همکاری در شهر کندهار و تمامی ولسوالی‌های آن با مشارکت برنامه جهانی غذا (WFP) عملی خواهد شد. به هر خانـواده مبلغ ۵۸۰۰ افغانی کمک نقدی در نظر گرفته شده است.

Shariat
Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Tuesday 04 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 674


# اسلامي امارت په غزه کې د حماس جهادي غورځنګ مبارزه وستایله



اسلامي امارت غزه کې د حماس جهادي غورځنګ مبارزه ستایلې او د یاد اسلامي غورځنګ د پوځي څانګې د مشر محمد الضیف په ګډون د څو نورو مشرانو له کورنیو سره یې خواخوږي شریکه کړې ده.

د اسلامي امارت مرستیال ویاند ملا حمدالله فطرت ویلي، چې د حماس جهادي غورځنګ مشرانو خپل راتلونکي نسل ته د صهیونېست رژیم پر وړاندې د عزت، زړورتیا، مقاومت او د نه ماتېدونکې ژمنتیا یو مثال پرېښود.

خبرپاڼه کې راغلي، چې د فلسطین قضیه د همدې رهبرۍ ... ۳مخ

## یک چکدم در لغمان به بهره‌برداری سپرده شد



وزارت آب و انرژی می‌گوید، یک چکدم به ارزش ۳ میلیون افغانی در مربوطات ولایت لغمان به بهره‌برداری سپرده شد.

به گفته وزارت آب و انرژی، چکدم یادشده بگونه اساسی در «دره کرنج» ولایت لغمان ساخته شده است. ص۳

## بررسی استفاده بهینه از زمین‌های اطراف قوش‌تیپه



نشستی به ریاست صدر اعظم عثمانی و با حضور نمایندگان چندین وزارت برگزار شد تا درباره مدیریت زمین‌های اطراف قوش‌تیپه و نقش آن در رشد اقتصادی بحث شود.

طبق خبر وزارت زراعت، آبیاری و مالداری: در این نشست که به منظور استفاده معقول از زمین‌های اطراف قوش تپه با اشتراک روسای وزارت زراعت و مسئولان وزارت‌های مالیه، انرژی و آب، شهرسازی و مسکن برگزار شد، صدر اعظم عثمانی، معین زراعت و مالداری گفت:

خوشحال هستیم که در مورد اقتصاد کشور و پروژه‌های اقتصادی بحث می‌کنیم طرح زمین‌های اطراف قوش تیپه یک طرح جامع و به نفع ملت است.

در همین حال مسئولان در این نشست پیرامون اهمیت زمین‌ها در محیط قوش تیپه ... ص۳

## برداشت پیاز در پنجشیر افزایش یافته است



زراعت آبیاری و مالداری ولایت پنجشر از افزایش حاصلات پیاز نسبت به سال گذشته در آن ولایت خبر می‌دهد.

قاری فضل‌الله دیوبند رئیس زراعت، آبیاری و مالداری پنجشیر به خبرنگار آژانس باختر گفته است که امسال از ۸۴هکتار زمین زراعتی در سراسر این ولایت ۷۶۸ تن پیاز برداشت شده است، در حالی که میزان برداشت سال گذشته از این هکتار زمین ۷۳۵ تن بوده است.

وی دلیل افزایش حاصلات پیاز در آن‌ولایت را آگاهی بیشتر دهقانان از شیوه‌های جدید زراعتی، تجهیز آنان با وسایل پیشرفته کشاورزی و توزیع تخم‌های اصلاح‌شده عنوان کرد. از سویی هم شماری از دهقانان پنجشیر با ابراز خرسندی از حمایت‌های ریاست زراعت آبیاری و مالداری آن ولایت، بر تداوم تلاش‌هایشان برای افزایش محصولات زراعتی در سال‌های آینده تأکید کرده‌اند.

## تداوی ۲۸ بیمار مبتلا به سوراخ قلب در شفاخانه های داخل کشور

ریاست هلال احمر افغانی خبر داده است که این نهاد ۲۸ بیمار مبتلا به بیماری سوراخ قلب را برای تداوی و عملیات به شش‌شفاخانه داخلی در کابل واگذار کرده است.

طبق خبر این نهاد: قرار است روند تداوی و عملیات این بیماران با کمک مالی هلال احمر افغانی انجام شود.

هلال احمر افغانی در گذشته نیز کودکان مبتلا به سوراخ قلب را برای تداوی به شفاخانه‌های بیرون و یا هم داخل کشور فرستاده است.




## ننګرهار کې د فیسټولا ناروغانو عملیات خونه پرانیستل شوه



د عامې روغتیا وزارت وايي، چې د ننګرهار په سیمه‌ییز تخصصي روغتون کې د ۲۵ زره ډالرو په لګښت د «فیسټولا» ناروغانو عملیات خونه پرانیستل شوه.

مسئولین وايي، چې یاده څانګه د «کیور» روغتون او «بي تیم» نړیوالې مؤسسې په مالي همکارۍ د سیمه‌ییز روغتون په نسایي ولادي برخه کې پرانیستل شوه.

## ۵۰۰ معتاد برای تداوی از لغمان به کابل فرستاده شدند



قوماندانی امنیه لغمان می گوید که مدیریت مبارزه با مواد مخدر آن قوماندانی، ۵۰۰ معتاد را طی شش‌ماه گذشته جهت تداوی به مرکز صحی هزاربستر کابل فرستاده اند. یونس یوسفزی سخنگوی قوماندانی امنیه لغمان به خبرنگار آژانس باختر گفته است که این معتادان طی شش‌ماه گذشته از مرکز و ولسوالی‌های آن ولایت جمع آوری شده بودند و جهت تداوی به مرکز تداوی هزاربستر کابل فرستاده شده‌اند.

یوسفزی می افزاید که روند جمع آوری معتادان و معرفی آنان برای تداوی به مراکز صحی در آن ولایت ادامه دارد.

اوگفت که قبلاً نیز صدها معتاد به مرکز هزاربستر کابل معرفی شده بودند و حدود ۴۵۰ تن پس از تداوی، با خانواده‌های شان پیوستند.




## واشنګټن پر پاناما کانال د چین کنټرول نه منونکی بللی

د متحده ایالاتو د بهرینو چارو وزیر مارکو روبیو د پاناما له چارواکو سره په لیدنه کې ویلي، چې د پاناما په کانال د چین کنټرول د منلو وړ نه دی. نوموړی وایي، که چین له دې چارې لاس و انخلي؛ نو متحده ایالت به د اوبو دې لارې ته د خپل لاسرسي خوندیتوب په پار لازم اقدامات وکړي.

د پاناما کانال په ۱۹۱۴ کال کې د امریکا لخوا جوړ شو او د اوږدې مودې لپاره د امریکا تر اداري لاندې و؛ خو د ۱۹۹۹ کال د ډسمبر په ۳۱مه د یو تړون له مخې د پاناما حکومت ته وسپارل شو



## حمله طیاره‌های بدون سرنشین اوکراین به روسیه

در نتیجه حمله طیاره‌های بدون سرنشین اوکراین به روسیه، فعالیت چندین میدان هوایی این کشور تعلیق شد. سازمان دیده‌بان هوانوردی روسیه اعلام کرده که پس از حمله طیاره‌های بدون سرنشین اوکراین، پرواز میدان هوایی آستاراخان و چهار میدان هوایی دیگر در کازان، نیژنکمسک، ساراتوف و اولیانوفسک این کشور به حالت تعلیق درآمد.

ایگور بابوشکین، قوماندان منطقه آستاراخان روسیه تایید کرده که تاسیسات انرژی و سوخت واقع در این منطقه در حملات اوکرایت هدف قرار گرفته است. تاهنوز گزارش رسمی مبنی‌بر تلفات جانی از این حمله اوکراین نشر نشده است. رسانه‌های روسی این حمله را بزرگ توصیف کرده که پالایشگاه نفت این کشور هدف قرار داده است. این در حالی است که دو روز پیش نیروهای اردوی روسیه حمله گسترده موشکی و طیاره‌های بی‌سرنشین را بر اوکراین انجام داده بودند.



## اعتراض ده ها شهروند آلمان در پی لایحه جدید محدود کردن مهاجرت

ده ها هزار شهروند آلمان در پی لایحه جدید محدود کردن مهاجرت در این کشور اعتراض کرده اند. این تظاهرات کنندگان که به گفته پولیس تعداد شان به حدود ۱۶۰ هزار تن میرسید علیه حزب راست افراطی آلترناتیو برای آلمان در دروازه براندنبورگ در نزدیکی مجلس بوندستاگ تجمع کرده بودند. این تظاهرات در حالی صورت می‌گیرد که فریدریش مرتس نامزد اتحادیه احزاب سوسیال مسیحی و دموکرات مسیحی برای انتخابات آینده آلمان تلاش کرد تا لایحه محدود کردن مهاجرت را در مجلس بوندستاگ تصویب کند که با مخالفت نمایندگان این مجلس روبرو شد.

## الجولاني عمره وکړه

د سوریې د انتقالي حکومت ولسمشر ابو احمد الجولاني سعودي عربستان ته په خپل سفر کې د عمرې مراسم پر ځای کړي دي.

ویل کیږي چې د مکې مرستیال والي په پاچا عبدالعزیز هوایي ډګر کې د نوموړي هرکلی کړی دی.

یاده دې شي چې نوموړی نږدې یوه اونۍ وړاندې د سوریې د لنډمهالي حکومت مشر وټاکل شو.